تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ حفظہ اللہ

محرر ومرتب


سید محمد ثواب

ابن سید اکا خیل باچا صاحب


اولہ حصہ


ناشر

مدرسۃ حذیقۃ الاحناف

## تبليغ الجاهل و النساء :

## التحقيق في تبليغ الجاهل والنساء :

اعوذ بالله من الشيطان الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم : ﴿ قُلْ هَـٰذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللَّهِ عَلَىٰ بَصِيرَةٍ أَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِي وَسُبْحَانَ اللَّهِ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴾ سورة يوسف آيت : ۱۰۸.

بله زير بحث مسئله تبليغ الجاهل والنساء دي مسئله کې تولو نه اول هغه افتراء دفعه کومه چې کومه خاصتاً په سيفي حضراتو پسې او د باړي حضرت صاحب باندې او خصوصاً په ما باندې تبليغي جماعت والا جوړه کړې ده هغه دا خلکو ته دا وايي چې دوي د تبليغ منکرين دي .

نو مونږ او زمونږ اساتذه او شيوخ چې دي د تبليغ منکر نه يو مونږ تبليغ فرض ګڼو او منکر د فرضو ته مونږ کافر وايو البته مونږ د دغه مشن منکرين يو .

تبليغ شريعت فرض بنودلې کفائي شرائط يې بنودلي دې د پاره يې چوکاټ بنودلې طرز او طريق يې بنودلې دا وظيفه د چا ده هغه خلک يې بنودلي د هر کجا خيل کار نه دي دا يې بنودلي دي نو هغه مونږ منو .

خپله يې هم الحمد لله کوو او زمونږ شيوخ هم مبلغين وه هر چې مسئله د دغه خاص مشن ده او دين راغونډول د دغه چوکاټ لره چې دا سبيل الله ګڼل او دې نه اخوا سبيل الشيطان ګڼل دا حماقت او جهالت دي مونږ د دغې منکرين يو نو تبليغ د فروضو کفايه وو نه دي باتفاق المسلمين .

نو اوله نزاع د تبليغي جماعت علماء سره زمونږ دا ده چې هغوي دې ته فرض عين وايي دا په اجماع د مسلمانانو باندې په اتفاق د مسلمينو باندې تبليغ فرض عين نه دي فرض کفايه دي خو اختلاف په دغه ځای کې دي چې دا فرض کفايه په څه حصه معينه د امت باندې دي چې سکوت د باقينو پرې راځي .

او که دا فرض په حصه غير معينه باندې دي دې کې علماء مختلف دي دا هيڅا هم نه دي ويلې چې دا فرض عين دي البته دا فرض کفائي دي چې زه به تاسو ته په دې اقوال ذکر

کړم یا چې فرض کفائي دي اختلاف دې ځای کې دي چې دا د امت په حصه معینه چې علماء دي په هغوي فرض دي او که دا په حصه غیر معینه باندې فرض دي.

دې کې اختلاف دي جمهورو علماء مشاهیر محققین دې ته ذهاب کوي چې دا فرض کفایه دي یا فرض کفایه په حصه معینه باندې دي چې علماء دي یعني په عوامو بالکلیة فرض نه دي نه فرضِ کفائي نه فرض عین.

دا چې فرض کفایه دي په حصې معینې باندې په علماء باندې دي نو چې په دوي فرض شو نو معنی دا شوه چې دې علماو کې یا یو کس تبلیغ کوي ددې نورو علماو رقبه پرې خلاصه ده او چې یو یې هم نه کوي د ټولو غاړه پرې بنده ده دا فرضِ کفائي په حصې معینې باندې چې علماء دي.

او دویم قول دا دی چې فرضِ کفائي دي خو په حصې غیر معینې باندې نو معنی دا چې عالم یې وکړي د عوامو غاړه پرې خلاصه شوه نو هغوي ترې دا معنی جوړه کړه چې فرض کفایه دي په کل احد احد باندې او اول قول دا شو چې فرضِ کفائي ده خو د علماو په جماعت باندې په هر احد د سره نه ده امي ته د سره خطاب متوجه نه دي نو دا فرض کفایه دي دلیل په فرضیت کفایه ددې باندې چې عین نه دي کفائي دي آیاتین دي:

اول: ﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُوا كَآفَّةً﴾ ینفرُ د نفیر نه دي نفیر یو لفظ دي په مقابله د عیر کې عیر ویل کیږي قافلې د تجارت لره نفیر ویل کیږي قافلې د جهاد لره.

﴿وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُوا كَآفَّةً﴾ نه دي په کار مؤمنانو ته چې لاړ شي جهاد ته په غونډه باندې یعنې نفیر جهاد ته په غونډه وکړي دا ورته نه دي په کار.

﴿فَلَوْلَا نَفَرَ﴾ ولې نه ځي.

﴿مِن كُلِّ فِرْقَةٍ﴾ د هرې ډلې نه.

﴿مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ﴾ دوي کې یوه طائفه.

﴿لِّيَتَفَقَّهُواْ﴾ چې فقه حاصله کړي.

﴿فِي الدِّينِ﴾ په دین کې یعنې یوه ډله دې علم پسې لاړه شي.

﴿وَلِيُنذِرُواْ قَوْمَهُمْ﴾ دغه فقهاء چې دي دوي بايد وويروي قوم خپل هغه مجاهدين.

﴿إِذَا رَجَعُوٓاْ﴾ كله چې را واپس شي دا مجاهدين.

﴿إِلَيْهِمْ﴾ دوي لره د جهاد نه.

﴿لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ بنائي چې يره قبوله كړي.

دا ايات كريمه تا ته دا ښايي چې امت به څه عوام څه علماء كوم چې طالبين د فقه علماء دي دا به مبلغين شي كوم چې عوام دي هغه په نفير جهاد ته وځي جهاد نه چې واپس هغوي راغلل دا فقهاء به هغوي ته انذار وكړي هغوي به په احكامو د جهاد هم پوهه كړي په هره مسئله به يې پوه كړي دوي به نصيحت كوي.

﴿لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ﴾ كيدې شي هغوي انذار قبول كړي.

دور دومره بدل شو جهاد ته ايستل د عوامو په كار وه عوامو جهاد پريښوده چې جهاد يې پريښود علماء طالبانو ويل چې اوس كار خرابيږي دې منصب ته دوي ودريدل كنه په زمانه د صحابه كرامو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ كې هغه زمانه كې به هم جهاد ته علماء تلل خو كارنامې يې په كې معروفې نه وي معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څومره معروف عالم وه يمن ته يې قاضي ليږي ما ته يې د جهاد كارنامه وښايه داسې نه چې جهاد ته نه تلو ډيرو جهادونو ته تللې دي خو كارنامې يې كمې دي.

دغه شان عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صف د جهاد كې برخه آخيستې خو كارنامې مشهورې نه دي دغه شان نور صحابه چې كوم فقهاء دي صديق اكبر عمرِ فاروق عثمان غني ددوي د جهاد كارنامې كمې ښكاري نو داسې نه چې جهاد يې نه دې كړي جهاد يې كړې دي خو ددوي شهرت علمي زيات دي.

بيا د فقهې علم او فتوى ميدان چې راشي بيا د ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اوچت مقام دي دغه شان د معاذ بن جبل خالد بن وليد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د فقهې ميدان ته چې راشي څه فتوى جاري كړې دي څومره كمې دي هيڅ شهرت د لته نه لري باب د جهاد كې بيا څومره معروف دي.

نو د صحابه وو زمانه كې هم د خواصو او عوامو فرق وه عوام به يې ليږل جهاد ته او خواص مشغول په فقه باندې وه چې كله به يې حاصل كړو نو بيا به يې هغه نورو ته رسيدكي

د دين کوله نو چې هر کله عوامو جهاد پريښودلو .
دا اوس چې کوم علماء او طالبان ولاړ دي له مجبوري نه ولاړ دي چې دوي هم تري نه کيني او عوام يې هم نه کوي نو څه به ترې نه جوړ شي او هر چې انذار دي هغه د فقهاء کار د: او د علماو کار دي نو ملايانو تبليغ پريښود .
نو عوامو وويل چې تاسو تبليغ نه کوي مونږ به دا کار شروع کړو نو هغوي راپاڅيدل دي منصب ته ودريدل خو په حقيقت کې ملايانو تبليغ نه دي پريښي دا خو ددوي جواب دي چې تاسې تبليغ نه کوي .
نو ځکه مونږ شروع کړې دوي تبليغ د دروازو ټکولو ته وايي دوي تبليغ د کوڅې ګشت ته وايي دوي تبليغ سې روزي چيلي او چار ماه ته وايي نو دا خو دددوي خپل ايجاد دي دا خو د تبليغ طرز او طريق په اسلافو کې هيچا هم نه دي ښودلې سوی ددوي مشر الياس نه دا خوده شروع کړي .
نو دغه آيت کريمه تا ته دا ښايي چې څه نفر به تفقه ته ځي او څه نفر به جهاد ته ځي نو دا ددې دليل شو چې نه جهاد فرض عين دي هغه صورت مستثنى دي چې کله غلبه د کفارو راشي استيلاء على المسلمين راشي لکه بعضې ملکونه د کفارو له تسلط لاندې راغلي هغې باندې نور نصوص دال دي خو عامو اوقاتو کې چې کله کفارو تسلط نه وي راغلې .
دې آيت نه پته لګي چې جهاد فرِ کفائي دي او دغه شان تفقه في الدين ترې هم ثابته شوه چې : ﴿لِيُنذِرُوا﴾ دا انذار به دا فقهاء کوي خپل قوم ته چې کوم فقاء نه دي نو دا ايات دليل په فرض کفايت باندې شو د جهاد د فرض کفايت دليل هم شو سوی د استيلاء د وخت نه.
او دارنګې د تبليغ د فرض کفايت هم شو نو هر کله چې دا فرض کفائي شو نو فروض زمونږ په دين کې ارکان لري شرائط لري تبليغ د پاره شرائط څو دي :
**وللتبليغ ثلاثة شرائط** : اول شرط د تبليغ د پاره عمل دي ، دويم شرط د تبليغ د پاره حکمت دي ، دريم شرط د تبليغ لپاره علم دي .
دليل د شرط اول لپاره :
﴿يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾

ای ایمان والو ولې قول کوي بل لره هغه چې تاسو خپله عمل نه کوي غټه ده له جهته د غضب نه عند الله دا خبره چې تاسو قول کوي هغه چې خپله یې نه کوي.

داد خدای تعالی په نزد غضب غټه خبره ده یعنې پرې غصه کیږي په غضب کیږي چې عمل نشته او قول شته نو دا مونږ ته څه ښایي چې قول بل ته څوک کوي د غه تبلیغ دي قول حسن سره به عمل ضروري وي.

ددې آیت کریمه له یو حدیث سره ټکراو دي او تبلیغیانو ټولو هغه حدیث یاد کړې دي دې اُمراو ورته ښودلي دي دا نص پریږدي هغې پسې ځي نو تاسو یې تطبیق وکړي رد مه کوي مقابله مه کوي.

حدیث دادی چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه چا تپوس وکړو مونږ کې یو کس هغه څه چې بل ته وایو او خپله مو پرې هغه شان عمل نه وي کړې بل ته یې نه وایو نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته فرمایي.

وایي دا حدیث ثابت حدیث دي چې هغوي هغه وخت کې چې مونږ عمل پوره ونه کړې شو بل ته یې هم نه وایو وایي نه بل ته یې وایي دې نه دوي دلیل نیسي چې عمل شرط نه دي نو آیت راغلې عمل څنګه شرط نه دي.

﴿كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾

نو تطبیق داسې دي چې یو تبلیغ دي په ترک المعاصي باندې نهي د منکر تبلیغ دوه حصې لري دعوة الی الخیر دوه حصې لري امرِ بالمعروف او نهي عن المنکر په صورت د نهي عن المنکر کې دې ایات پسې لاړ شه.

﴿لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾ منکر خپله عملي کوي او بل ترې منع کوي نو دې خطاب کې ته راځي.

﴿كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾

او هر چې صورت د امرِ بالمعروف دي معروفاتو باندې اتیان دي نو هغه صورت کې بیا مسئله داده چې خپله هم کوشش کوه چې عمل وکړي که ټول په ټوله دې عملي نه کړو خو د تبلیغ نه مه منعه کیږه بل ته یې رسوه.

مثلاً په سنت باندې امر بالمعروف دي نو ټول سنت چا پوره کړې دي څه نا څه خو به کم وي او س به یې بل ته هم نه بیانوي بل ته خو دې بیان کړي او دارنګې مستحبات باندې بیان د فرائضو بیان وغیره چې څومره دي نو دا اتیان په نیکیو باندې چې د امرِ بالمعروف حصه ده دلته خپله هم عمل کوه که چیرته تقصیر در کې وي تبلیغ نه مه منع کیږه بل ته یې هم رسوه.

او صورت د نهي عن المنکر چې ده هغلته چې کوم منکر کې ته مبتلاء وي نو په خوله یې بل ته مه یادوه اول خپل ځان اصلاح کړه بیا یې بل ته بیانوه.

نو دویم شرط چې حکمت دي لپاره دلیل :

﴿ادْعُ إِلَى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ﴾.

دعوت ورکړه لارې د رب خپل لره په حکمت او موعظه حسنه سره یعنې په خوش اخلاقي سره د حکمت ډیر معاني شوې خو یو د حکمت نه موقع شناس دلته ترې نه مراد دغه معنی ده زمونږ په دې شرط کې دغه معنی مراد ده.

او دې ایت نه هم د دغې معنی لپاره استدلال شوې دي موقع شناس دې لپاره د مشکوة یو حدیث دي په کتاب العلم کې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته څوک راغلې دي ورته یې ویلې دي مونږ ته نصیحت کوه وایي د پنجشنبې په ورځ به یې درته کوم.

وایي نه زمونږ شوق ډیر زیات دي ډیر راته کوه وایي څه دوه ځل به درته کوم وایي زمونږ ډیر شوق دي زیات راته کوه وایي درې ځل به درته کوم وایي نه زمونږ شوق زیات دي.

وایي مونږ نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ داسې نه یو تربیه کړي چې د دین په اشاعت خلک له دین نه متنفره کړو درې وو نه زیات درته نه شم کولې نو ولې له دریوو نه اخوا تبلیغ دې نه کوي په هفته کې ځکه یې نه کوي چې بیا سبب د نفرت د دین جوړیږي او تبلیغي حضرات یې د ورځې څلور (۴) ځل کوي نو په هفته کې ترې نه څو ځل جوړ شول.

نو دا د دغه حدیث مخالفت دي د هر څیز یو قدر شریعت ښودلې دي هغه قدر نه چې زیات شي نو سبب د نفرت شي.

دریم شرط د تبلیغ لپاره علم : سورة یوسف آیت : ۱۰۸ :

﴿قُلْ هَذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللَّهِ عَلَى بَصِيرَةٍ﴾

اعلان په خلکو کې داسې وکړه لارې د دين ته زه دعوت ورکوم الى الله على بصيرة په علم حجت او دليل باندې.

﴿أَنَا۠ وَمَنِ ٱتَّبَعَنِي﴾ زه به هم دا دعوت ورکوم څوک چې زما متبعين دي هغوي به يې هم ورکوي په بصيرت او علم باندې.

﴿وَسُبۡحَٰنَ ٱللَّهِ وَمَآ أَنَا۠ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ﴾

نو دا دعوت الى الله على بصيرة په کار دي دې آيت کريمه باندې روح المعاني جلد ۷ صفحه ۷۸ ذکر کوي:

في الآية اشارة الى انه ينبغي للداعي الى الله تعالى. دې آيت کې اشاره دې ته ده چې داعي الى الله ته په کار دي.

ان يكون عارفاً. چې عارف به وي.

بطريق الايصال اليه سبحانه عالم بما يجب له تعالى وما يجوز وما يمتنع عليه جل شأنه.
علم کلام به يې ويلې وي خداى تعالى کوم صفات د کوم څيز نه په ده باندې اطلاق جائز نه دي څه جائز دي نو دې به عارف وي او دې به عالم وي بيا وايي.

والدعاة الى الله تعالى اليوم. دعوت والا خداى تعالى ته دا نن ورځ چې دې هغه وخت دا تبليغي جماعت والا نه وه څه نور خلک به وه.

من هؤلاء الذين نسبوا انفسهم الى الارشاد. هغه دي چې ځانونه ارشاد ته منسوبوي.

بزعمهم. په خپل زعم سره.

اجهل من حمار الحكيم. خو دوي ډير جاهل دي له مضبوط خره نه.

بيا مخکې وايي:

وهم يحسبون. دوي ګمان کوي.

انهم يحسنون صنعاً. چې دوي ښه کار کوي.

ولبئس ما كانوا يصنعون. بد کار دغه دي چې دوي يې کوي.

دارنګې القصاص والمذکرین د ابن رجب حنبلي تصنیف دي جلد ۱ صفحه ۱۶۱ کې ذکر کوي :

**والسادس ان عموم القصاص** . عام بیان کوونکې .

**لا یتحرون الصواب** . حق نه لټوي .

**ولا یحترزون من الخطأ** . او بل د خطأ نه ځان نه ساتي .

**لقلة علمهم وتقواهم** . تقوی یې هم کمه ده او علم یې هم کم دي .

**فلهذا کره القصص من کرهه** . چا چې د بیان کوونکې بیان ته مکروه ویلې علت یې دغه دي .

**فاما اذا وعظ العالم** . هر چې عالم بیان کوي .

**وقص من یعرف الصحیح من الفاسد** . او بیان ددې کوي چې صحیح د فاسد نه بیلوي.

**فلا کراهة** . بیا کراهیت په کې نشته .

دا زمونږ او تاسې مقررین هم په کې راغلل چې دا غوږونو کې لاس کیږدي او خوش آوازي کوي وروسته به نور آحادیث هم په دې راشي چې ددوي بیان اوریدل هم صحیح نه دي ځکه عالمان نه دي او کار د علماو کوي .

دا بیانونه څه وخت نه شروع شول د صحابه کرامو زمانه کې دا نه وه چې مونځ وشي او د مانځه نه بعد یو سړي ولاړ شي او بیان شروع کړي او یا په کرسي کیني او بیان شروع کړي .

د درس جدا شکل ده دا له هغه وخت نه شروع وه د صحابه کرامو زمانه کې دا وه خو دا بیانونه د جمعې له خطبې او تقریر نه غیر د مانځه نه وروسته د محراب خوا کې دریدل یا کیناستل او بیان کول دا بیانونه هغه وخت کې نه وه دې باندې به زه حوالې ذکر کړم :

ابن ابي شیبة جلد ۸ صفحه ۵۵۷ باب لګوي :

**باب من کره القصص وضرب فیه** ، چا چې بیاناتو ته مکروه ویلې دي او خاصتاً په دې کې مقرر ته وهل ورکړې دي یعنې بیان کوونکې وهلې دي هغه روایات :

**حدثنا معاوية بن هشام قال حدثنا سفيان عن عبيدالله عن نافع عن ابن عمر قال لم يقص زمان ابي بكر ولا عمر انما كان القصص زمن الفتنة .**

زمانه د ابوبکر صدیق او عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا کې دا بیانونه نه وه قصص واقعات او د عوامو دا بیانونه نه وه دا قصص د فتنې په زمانه کې پیدا شول .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۸ صفحه ۵۵۸ :

**حدثنا معاوية بن هشام قال حدثنا سفيان عن سعيد الجريري عن أبي عثمان قال كتب عامل لعمر بن الخطاب اليه .**

عراق نه د عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ګورنر خط لیکي امیر المؤمنین ته :

**ان هاهنا قوماً يجتمعون .** دلته یو قوم دي راغونډیږي .

**فيدعون للمسلمين وللأمير .** په سکون د دال سره که شي دُنو معنی دعاء کوي د مسلمانانو امیر لره دلته راغونډیږي او یا د دعوت نه دي یدعون دعوت ورکوي مسلمینو عامو ته او امیر لره دلته یو قوم دي دعوت ورکوي ډله نوي د تبلیغیانو پیدا شوې وه عراق کې د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې .

**فكتب اليه عمر .** عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته خط لیکي :

**أقبل وأقبل بهم معك .**

ته هم راشه او دوي هم ځان سره راوله .

**فاقبل .**

د عراق ګورنر راغې سره د هغه کسانو عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چا وویل چې میلمانه د عراق راغله .

**وقال عمر للبواب اعد لي سوطاً .**

عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بواب ته وویل یوه بنه دُره راته تیاره کړه .

**فلما دخلوا على عمر .**

کله چې عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دوي دننه شول .

**أقبل على اميرهم ضرباً بالسوط** . شروع شول په امير ددوي باندې چې په كوړه يې وهه كوري هغه وخت كې هم دوي كې امير وه .

**فقال يا امير المؤمنين** . هغه پوه شو چې كنې امير المؤمنين د خوارجو گمان راباندې وكړو هغه حديث كې راځي :نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي له مشرق نه به يو قوم راوځي هغه اوس ځان خلاصوي .

**فقال يا أمير المؤمنين انا لسنا اولئك الذين يعني اولئك قوم يأتون من قبل المشرق** .

هغه مشرق نه چې يوه ډله پيدا كيږي مونږ هغه نه يو مونږ د خير لپاره راپورته شوې يو .

دارنګې په دغه صفحه باندې ابن ابي شيبة بل روايت ذكر كوي دا اوس عمرِ فاروق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دعوت والا او امير د هغوي وهلې دي :

**حدثنا يحيى بن سعيد عن سفيان عن ابي حصين عن ابي عبد الرحمن ان علياً رأى رجلاً يقُص** .

حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يو سړي وليدلو بيان كوي :

**فقال علمت الناسخ والمنسوخ**؟ ورته وي ويل ناسخ او منسوخ پيژني .

**فقال : لا** . وايي نه .

**قال هلكت واهلكت** . ته هم هلاک شوې او خلک دې هم هلاک کړل .

دغه حديث د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سنن الكبرى للبيهقي جلد ۱۰ صفحه ۱۱۷ المعجم الكبير للطبراني جلد ۹ صفحه ۱۲۳ ، مصنف عبد الرزاق جلد ۳ صفحه ۲۲۰ دې ټولو ذكر كړې د مصنف عبد الرزاق الفاظ دادي :

**عبد الرزاق عن معمر قال بلغني ان علياً مر بقاص فقال اتعرف الناسخ من المنسوخ قال لا قال هلكت واهلكت قال ومر بآخر** .

بل يو بيان كوونكې باندې تير شو .

**قال ما كنيتك** . كنيه دې څه ده .

قال ابو يحيى قال بل الت ابو اعرفوني .

نه ابو یحیی نه یې ابو اعرفوني یې هغه سړي یې چې خلکو ته وایي ما وپیژنه مشروټ یې دا یې بده وګڼله .

همدا روایت معجم ابن المقري را اخیستې جلد ۳ صفحه ۲۴۰ کې چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وویل :

اتدري ما الناسخ والمنسوخ قال لا قال هلكت واهلكت فلا تقص في مسجدنا .

دلته بیانونه مه کوه د مسجد نه یې منع کړو مونږ چې مسجد نه بند کړو وایي د تبلیغ مخالف دي نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څنګه بند ول هغه هم د تبلیغ مخالف وه .

بیا داد نن صبا د تبلیغ جماعت چې نه یې په کشرانو اعتماد شته او نه یې په مشرانو سوا د مولانا زکریا صاحب نه.

همدا روایت العلم لابي خیثمة را اخیستې جلد ۱ صفحه ۳۱ ، دارنګې العلم لزهیر بن حرب جلد ۱ صفحه ۱۳۲ کې هم را اخیستې ، القصاص والمذکرین جلد ۱ صفحه ۱۸۱ کې را اخیستې په دې کې مصنف د کتاب دا وایي :

لا ينبغي ان يقص على الناس الا العالم المتقن . بنه عالم چې نه وي بیان دې نه کوي دا خو د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت شول .

اوس بل روایت د حضرت عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي المدخل الی السنن الکبری للبیهقي جلد ۱ صفحه ۱۳۵ الضحاک بن مزاحم وایي :

مر ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بقاص . ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په یو بیان کوونکې باندې راغې بیان کوي .

فضربه برجله . په خپه یې ووهه .

وقال يا قاص . هغه ورته وایي .

يا قاص هل تعلم الناسخ من المنسوخ ؟ قال وما الناسخ والمنسوخ ؟

هغه وویل دا څه شي دي .

قال اولا تعرف ؟ قال لا قال هلكت واهلكت .

ته هم هلاک یې خلک دې هم هلاک کړل.

دې کې عبد الله ابن عباس رضي الله عنه بیان کو ونکې په لغته وهلې اوس یې وهل څنګه شول نو وهي یې مه خو په جوماتونو یې بند کړي داد حضرت علي رضي الله عنه سنت پوره کړې دا کافي دي مسجد نه یې لرې کړي عوامو ته دا اختیار ورکول دا ډیر بې کاره کار دی.

دې ځای کې یو ضمني اعتراض او د هغې جواب دلته مونږ سره نزدې یو عالم دې شیخ الحدیث هم دې خو اوس په دې غضب ککړ دي نو هغه طالبانو ته بار بار دا پرچار کوي چې دا ډیر بهترینه لاره ده تاسو ټول دې کې وځي.

نو هغه ته زمونږ یو شاګرد ویلي وه چې دا خو علم ورته شرط دي وایي څومره علم شرط دي د علم څه اندازه لګیږي طالب یې په دې دباو کړې وه د علم خوله سره اندازه نشته چې علم شرط دي نو څومره شرط دي که علم په دوه دري مسئلو وي خو دې یې هم لري او که عمل په ټول دین وي نو ته هم ملا نه یې نو اعتراض دی.

نو د هغې جواب به دا وي چې د علم لپاره عرفي هم حد شته او شرعي هم حد شته شرعي حد یې حضرت علي رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه بیان کړو چې:

اتعرف الناسخ من المنسوخ.

دې تبلیغیانو نه پوښتنه وکړي ناسخ منسوخ نه دوي بیلولې شي او دلته قرآن نه راځي:

هل تعرف الناسخ من المنسوخ بالقرآن.

عام یاد وي بالحدیث هم یاد وي ناسخ منسوخ په حدیثو او قرآن ټول کې پیژني دا خو شرعي حد شو.

او عرفا حد چې دې هغه وړه او لویه دوره ده په عرف کې چې وړه او لویه دوره چا نه یې کړې هغه ته څوک عالم نه وایي نو طالبانو کې هم چې چا غټه وړه دوره نه وي کړې بیانونو نه ځان ساتي ما به هم له فراغت نه مخکې کړې وي خو لکه بیا احتیاط په کار دې چې تر څو وړه او لویه دوره نه وي شوې نو نه یې کول په کار خاصتاً فن د حدیثو کې خو ډیر احتیاط په کار دې علماء او فقهاء دوي سد الباب کوي دې نه بیا فساد جوړیږي.

ما ته یو تبلیغي امیر صاحب راغې او ما ته وایي چې ته څنګه مونږ دلته نه پریږدې ګوره هسې یو تپوس درنه کومه چې تبلیغ پیغمبري کار نه دي ما ورته وویل ولې نه دا خو

پيغمبري كار دي نو لو پيغمبرانو عَلَيْهِمُ السَّلَامُ كړې دي وايي چې پيغمبري كار دي نو ددې پيغمبر امتي خو زه هم يمه څنګه زه به يې نه كومه او ته به يې كوې ما ورته وويل زه پو ښتنه درنه كومه ورته مې وويل دا خو پيغمبري كار دي خو چې دا پيغمبران عَلَيْهِمُ السَّلَامُ دنيا نه لاړ دا ميرات شوه كه څه وارثان يې پاتې شول.

وايي چې وارثان خو يې شته دي ما ورته وويل چې وارثان يې څوک دي وايي علماء دي ما ورته وويل چې ته څه كجاخيل يې چې له ما سره په دې ميراث كې شريک كيږې د پيغمبرانو كار دي خو وارثان يې شته دي هغه به يې كوي كنه چې علماء دي نو تاسو هم سوچ وكړي انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ:

لم يورثوا دينارا ولا درهما بلكې ورثوا العلم.

علم يې ميراث كې پريښې دي او دغه علم كې ميراثه د چا ده په دې علم كې مثراثه د علماو ده دوي به دا كار كوي هر چې عمل دي عالم به يې هم كوي او ته يې هم كوه عمل بالشريعة عام دي علم او تعليم ددې چې كوم دي دا تر علماو پورې خاص دي عوامو ته به دې كې اختيار نه وركوي.

عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به قال رسول الله نه ويل شاګرد يې وايي حديث به يې چې ويل وايي قال رسول الله به يې نه ويل يوه ورځ يې وايي بې اختياره له خولې نه قال رسول الله بهر شو وايي رنګ يې متغير شو او د مرئ رګونه يې وپړسيدل او بيا يې وويل:

قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هكذا هكذا.

كه صدق وي هغه ته دې منسوب وي كه كذب وي ما ته دې منسوب وي.

علماء د احتياط له وجې نه دا خبره كوي نو كه دا عوامو ته مونږ پريږدو او امي سړي پاڅيږي د ملا په مخكې حضور مې فرمائلي دي نو هغه د حضور په فرمائلو څه پوهيږي.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په عربي فرمائي او ته په پښتو لګيا يې حضور څنګه فرمائلي دي او د حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا فرمائل څو قسمونه لري.

په هغه ابتداء د اصولو كې ما د احاديثو اقسام بيان كړل بيا يې بيلولې شي چې داد حديث كوم قسم دي نه پوهيږې وربانديې كنه او كه دا خبره دوي كوي چې مونږ خو صرف

کتاب کې لګيا يو له بهر نه خبرې نه کوو له ځان نه لګيا دي اول اعلان يې له بهر نه دي د ايمان او يقين خبرې به کيږي او بيا چې شروع شي دري منتهه د کتاب نه وغږيږي او بيا نور په يادو شروع شي بيا خو نيمه ګينټه له ځانه لګيا يې کتاب يې بند کړې وي او خپله ترانه ضبطوي د الله نه د کيدو يقين او د مخلوق نه د نه کيدو يقين دې ته شروع شي په دې کې د نبي عَلَيۡهِ‌السَّلَامُ د صحابه وو واقعات بيا بيانوي .

په دې کې د خپل تبليغي جماعت کرامت بيا بيانوي چې دشته کې مړه را روانه وه خوله کې درهم نيولې وه دنانير يې نيولې وه دا کرامتونه بيانوي دا ټولې خبرې ستا له ځانه دي .

او که دا جواب دوي کوي چې نه مونږ خو مسائلو کې خبرې نه کوو مونږ فضائلو کې خبرې کوو دا هم دروغ وايي او له خبر دي مسئله نه چې علم کلام دي الله سے ہونے کا یقین دا فضيلت دي که دا مسئله ده او په مسئلو کې پيچيده مسئله ده چې د علماو ذهن په کې کار نه کوي او ته را پورته شي د عوامو مينځ ته د ايمان او يقين خبرې غور ځوي .

دارنګې المذکر والتذکير جلد ۱ صفحه ٦٧ :

حدثنا ابو موسى انا الضحاك بن مخلد ثنا عبدالحميد بن جعفر ثنا صالح بن ابي غريب عن كثير بن مرة قال دخل عوف بن المسجد وابن عبد كلال فاذا جماعة .

عوف بن مالک سره د ملګري مسجد ته راغې يوه ډله ناسته ده .

قال فقال عوف ما هذه الجماعة . دا ډله د چا ده .

قالوا كعب يقص . کعب بيان کوي ورته دا خلک دې بيان ته ناست دي .

قال يا ويحة . يا هلاک دې شي .

اما سمع قول رسول الله صلى الله عليه وسلم . د نبي عَلَيۡهِ‌السَّلَامُ خبره يې اوريدلې نه ده .

لا يقص الا امير او مأمور او مرائي او مختال .

بيان به نه کوي مګر امير به يې کوي د امير معنى په اولى الامر سره هم کيږي .

او د امير معنى په فقيه سره هم کيږي هغه ايات کې راځي :

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الأَمْرِ مِنكُمْ﴾

اولی الامر د امیر جمع ده نو دغه امیر امراء اولی الامر چې دي حضرت عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تري نه فقهاء علماء اخلي او حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امراء د سرايا وو واليان گورنران د امارت اسلامي اخلي نو بيان به نه كوي مگر امير او مأمور چې د هغه له خوا ورته امر شوې وي او مرائي يا رياكار او مختال يا كبرجن دي وو نه به خالي نه وي.

نو دلته اشاره دې ته كوي چې ده ته امر چا كړې دي دا حديث دد دليل دي چې بايد بيان والا او د جمعي بيان هم د امير په خوښه وي.

په اكثره ملكونو كې په عربو كې ايران كې مسقط كې متحده عربي اماراتو كې وغيره كې د سركار له خوا د جمعې خطبه راځي او همغه لوستلې كيږي د هغې نه اخوا ديخوا څوك څه نه شي ويلې دا ډير ښكلې قانون دي د شريعت موافق قانون دي عربو كې هم څوك له ځان نه نه شي غږيدلې.

دا يوائې پاكستان افغانستان دي چې دلته د جمهوريت په نوم په هر مسجد كې بيل مذهب جوړ شوې دي نو كه د سركار له خوا نه خطبه راتلې نو دو مره فساد به نه وي.

نو اصلاً نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ كنټرول د امارت اسلامي ښودلې دي چې بيان به امير كوي مامور به يې كوي او مرائي كوي يا يې مختال كوي يعني هر چا ته د بيان اجازت نشته.

دارنګې المذكر والتذكير جلد ۱ صفحه ۸۶:

**حدثني محمد بن مصفى ثنا بقية عن صفوان بن عمرو حدثني الازهر بن عبدالله الحرازي عن ابي عامر الهوزني قال حججت مع معاوية رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.**

عامر الهوزني وايي د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره حج ته راغلم.

**فلما قدمنا مكة.** مكې معظمې ته چې راغلو.

**حدث برجل يقص.** دلته يو سړي دي بيان كوي او فتوى وركوي مولى لبني مخزوم دي.

**فارسل اليه.** څوک يې ورو ليږه هغه ته.

**فقال امرت بهذا؟.** ورته وي ويل امر درته شوې په دې.

**قال لا.** هغه وويل نه.

قال فما حملك عليه . څه شي دربانديې باعث شو .

قال نفسي وننشر علماء عندنا . دلته علم خوروو .

قال معاوية رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لو تقدمت اليك قبل مرتي هذه لقطعت منك طابقاً .

حضرت معاويه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وويل كه زه مخكې راغلې وې ګردن به مې درنه كټ كړې وي خو دا اول ځل دربانديې پيښ شو مه .

فلما صلى صلاة الظهر قعد على المنبر فقال يا معشر العرب . بيا يې تقرير وكړو خلک يې په دې پوهه كړل چې د هر چا بيان ته مه كيني .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۸ صفحه ۵۵۹ :

حدثنا شبابة بن سوار قال حدثنا شعبة قال حدثني عقبة بن حريث قال سمعت ابن عمر وجاء رجل قاص . يو بيان والا سړي راغې .

وجلس في مجلسه . دې مجلس كې دې بيان والا كيناسته .

فقال ابن عمر . ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته وايي .

قم من مجلسنا .

زمونږ د مجلس نه پاڅه بيخي يې په مجلس كې پرې نښود .

فابى ان يقوم . هغه انكار وكړو نه پاڅيدلو .

فارسل ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ الى صاحب الشُرط .

پوليسو والا ته ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څوک وليږل .

اقم القاص . راشه دا سړي زمونږ له مجلس نه پاڅوه .

فبعث اليه فاقامه .

بيان كوونكې ابن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغې مجلس كې پرې نښودلو وايي دا بدعتي دې دا مه پريږدې زما په جلسه كې هسې ناستې ته يې هم مه پريږدې هغه نه پاڅيده شرطې والا ته يې وويل چې دا لرې كړه زما له مجلس نه .

**که څوک اعتراض وکړي ! بلغوا عني ولو آية ، هغې سره به څه کوو ؟.**

دا یو علمي اعتراض دي چې مخالفین ترې نه استدلال کوي دا **بلغوا عني ولو آية** د لفظ نه وروسته چې کوم **آية** ذکر دي دا مفعول مطلق دي په حذف د مضاف مقدره سره **بلغوا عني ولو تبليغ آية** ، ورسوي له ما نه اګر که تبلیغ د یو آیت وي .

دې ځای کې چې څوک دا معنی کوي چې **بلغوا عني ولو تعلمتم آية** ، ورسوي زما نه اګر که یو آیات مو یاد وي دغه معنی هیچا هم نه ده کړې چې ما نه ورسوي اګر که یو آیت مو یاد وي دغه معنی نه ده مراد **بلغوا عني ولو تبليغ آية** ، اګر که تبلیغ د یو آیت وي داد امت د مبلغینو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د تبلیغ سره خاص دي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مامور د ټول دین دي په تبلیغ باندې وه او ما او تا د ټول دین په تبلیغ مکلف نه یو هغه ته آیت دا وه :

**﴿ بَلِّغْ مَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ وَإِن لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ ﴾**

که هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو هم پریښې وي رسالت کې نقصان راتلو رسالت نه رسیدلو نو هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ټول دین په تبلیغ مکلف دي مونږ او تاسې علماء چې یو **بلغوا** ورسوي عني زما نه **ولو تبليغ آية** یعنې ای علماء تبلیغ نه غلي مه پاتې کیږئ رسوي یې که هر څو آحادیث وي اګر که یو حدیث هم وي خو وي رسوي .

نو د حدیث دا مقصد دي چې تاسو د تبلیغ نه غلي مه پاتې کیږئ لږ وي که ډیر وي تبلیغ کوي داسې نه دي ویلې چې ستاسو به زده لږ وي او خبرې به ډیرې کوي ، یا به مو یو آیت یاد وي هغه به رسوي دا مقصد نه دي ستا به ډیر یاد وي ته به عالم یې هغې نه بعد به تا ته تبلیغ جائز کیږي خو ته بیا مکلف په رسولو د ټول دین نه یې ټول دین یو مبلغ هم نه دي رسولې خو مکلف نه دي ورباندې او نه په دې مواخذه کیږي چې ټول دین دې ولې نه دي رسولې خپل وس موافق به لګیا وي یا لږ یا ډیر خو دې به تبلیغ کوي د حدیث دغه مقصد دی.

او دویمه داده که خامخا ضد او عناد څوک کوي چې نه **بلغوا عني ولو آية** ، نو زه بیا جواب کوم چې دا خو قاریانو ته دي چې یو ایت دې یاد کړو نو بل ته یې ورسوه حدیث خو

دلته نه دي راغلي او نه مسئله راغلي ايت خو حديث ته نه شي ويلې ولو آية دغه ضد زه نه کومه خو هسې چې ځوک ضد کوي چې نه بلغوا عني ولو آية معنى داچې يو آيت دې رسوه يې.

نو بيا خو آيت راغلي حديث خو نه دي راغلي نو آيت چې دې ياد کړو بل ته يې رسوه هغه خو له سره هم نه دي رسولي ځو مره آيتونه زمونږ ياد دي بيا خو قاريانو رسولي مونږ نه دي رسولي.

**كتاب الحوادث والبدع** داد ابوبكر ترطوشي تصنيف دي په ۵۲۰ سنه کې تير شوې دي دې يو روايت ذکر کوي تاسو ګورئ چې دغه وخت سره داد مسجد د منبر په خوا بيان د چا وظيفه وه دې حديث نه معلوميږي چې داد منافقانو کار وه د محراب سره دا بل بيان د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د خطبې او تقرير نه چې وروسته بل بيان کوي دا دويم بيان چې دي داد منافقانو کار وه.

دلته مصنف يو باب لګوي امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

**اني لا كره القصص في المساجد.**

په مساجدو کې دا بيانات زه مکروه ګنمه.

په دې کې ډير روايات بيا ذکر کوي نو په صفحه ۸۰ باندې دا روايت ذکر کوي :

**قال مالك ابن انس كان رجل من المنافقين.** وه يو سړي له منافقينو نه.

**يقوم كل جمعة في المسجد.** او دريده به د هرې جمعې په ورځ په مسجد کې.

**فيحض على طاعة رسول الله** صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د تابعدارې تيز والې به يې کولو.

**فلما كان يوم خيبر.** چې د خيبر د جهاد ورځ راغله.

**انصرف بالناس من قتال العدو.** د خلکو سره د جهاد نه واپس راغې چې راغې.

**ثم قال بعد ذلك في المسجد.** بيا په مسجد کې اودريده.

**فحض على طاعة رسول الله** صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. بيا يې تقرير شروع کړو.

**فامر بهن النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فاخرج من المسجد** . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ امر وكړو چې دا سړي مسجد نه وشړي وايي د مسجد نه ويستلې شو وايي چې بهر لاړو نو دې څه وايي :

**لا اباني الا اصلي في حشبلي فلان** . هيڅ باک نشته دي چې زه په بني فلان کې مونځ کوم او که دلته يې کوم .

کنايه يې وکړه يعني دا څه خبره ده بل ځای به مونځ کومه بس هغه مسجد يې پرېښودلو بيا به مسجد نبوي ته نه راتلو بل ځای به يې مونځونه کول .

نو دغه بيانونه د محرابونو په څوا کې دا هغه دور سره منافقينو ايجادول شروع کړه نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيان والا وشړل مسجد نه .

دې کې څه ډير روايات را اخلي عجيب عجيب سليمان بن مهران اعمش بصري ته راغې د بصرې په جامع مسجد کې :

**قاص يقص في المسجد** . مسجد کې يو څوک بيان کوي دې راغې .

**تتوسط الاعمش الحلق وارفع يديه** . نو دا خو سمه داسې حلقه ناست وې ډير ناست وه نو دا امام اعمش را دننه شو د حلقې مينځ ته راغې .

**ورفع يديه وجعل ينطف الشعر ابطه** . او ددې بيان والا په دې مينځ کې لاس اوچت کړو او د خپل تخرګ نه يې ويښتان ويستل شروع کړه چا ورته وويل چې دا دې څه چل وکړو ته ولې مونږ ته داسې ولې په سپکه ګوري وايي زه په سنتو کې لګيا يم او تاسو په بدعت کې لګيا يې تاسو نه زه ډير ښه يمه .

**فقال له قاص يا شيخ الا تستحيي** . حياء نه درځي .

**نحن في علم وانت تفعل مثل هذا فقال الاعمش الذي انا في خير من الذي انت فيه** . تا نه خو زه په ښه کار کې لګيا يم وايي هغه څنګه .

**لاني في سنة وانت في كذب** . ته په دروغ کې يې او زه په سنت کې يمه .

بل روايت همدې کې راځي وايي ته په بدعاتو کې لګيا يې .

دغه شان بل روايت پيش کوي حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ ته معاذ بن قره وايي :

اعود مريضاً احب اليك واجلس الى قاص . دلته يو سړي بيان ته او درېږي هلته يو بيمار دي د هغه بيمار پرسي ده هغې ته لاړ شم که دې بيان ته کينمه .

قال عد مريضك . ځه د بيمار بيمار پرسي دې وکړه .

اطيعوا جنازة احب اليك واجلس الى قاص . بيان والا ته کينمه که جنازې ته لاړ شمه جنازه روانه ده وايي ځه جنازې ته لاړ شه يو سړي رانه کار کې کومک غواړي .

فاعينوه او اجلس الى قاص . چا سره کومک وکړم که بيان والا ته کينمه .

اقضي حاجتك . وايي د مسلمان حاجت پوره کړه .

زمرة وايي :

قلت للثوري . سفيان ثوري ته مې وويل .

نستقبل القاص بوجوهنا قال ولو البدع ظهوركم . بيان چې شروع وي نو مونږ که دې بيان والا ته که دې مسجد کې راګير شو يا ناست يو مخ ورواړوو که شا ور واړوو وايي شا ورواړوي ځکه وايي دا بدعتيان دي او بدعتيانو ته به شاه وراړوي .

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۸ صفحه ۵۶۰ :

حدثنا شريك عن ابن عون عن ابن سيرين قال بلغ عمر ان رجلاً يقص بالبصرة .

ابن سيرين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي عمرِ فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چا وويل بصره کې يو سړي دي بيانونه کوي هغه ورته خط کې دا آيت وليکه :

﴿ الر تِلْكَ آيَاتُ الْكِتَابِ الْمُبِينِ إِنَّا أَنزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ هَـٰذَا الْقُرْآنَ وَإِن كُنتَ مِن قَبْلِهِ لَمِنَ الْغَافِلِينَ ﴾

پوه يې کړو چې احسن القصص د قرآن کريم ترجمه ده اشاره يې ورته وکړه چې د قصصو ډير شوقي يې نو دلته خلکو ته قرآن کريم شروع کړه .

قال فعرف الرجل فترکه . هغه سړي په دې اشاره پوه شو خپل بيانونه يې بيا پرېښودل.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۸ صفحه ۵۶۰ :

حدثنا ابن مهدي عن سفيان عن سلمة عن ابي الدرداء جار لسلمة قال قلت لعائشة او قال لها رجل. يا ما يا يو سړي بل ورته وويل.

اتى القاص يدعوا لي. بيان كوونکې چې بيان کوي دعاء ته ورشمه.

فقالت لان تدعوا لنفسك خير من ان يدعو لك القاص. چې خپل ځان ته دعاء وغواړې دا درته ډيره غوره ده چې بيان والا دعاء درته کوي د هغې نه دا خپله دعاء درته ښه ده.

دې نه پته لګي دا بعضې ډير ناپوهان اجتماع ته منډي وهي وايي صرف دا کې ځان شريکوم هغلته ټول قصاصين را غونډ وي علماء په کې نه وي نو ددغه قصاصينو دعاء ته د عائشې بي بي فتوى ده انفرادي دعاء ترې غوره شوه.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۸ صفحه ۵۶۱: عبيد الله بن عمر د نافع رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت کوي:

قال لم يكن قاص في زمن النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. نه وه دا بيان کوونکي په زمانه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کې.

ولا زمن ابي ابكر ولا زمن عمر ولا في زمن عثمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

دارنګې مصنف ابن ابي شيبة جلد ۸ صفحه ۵۶۱:

ابن معقل قال كان رجل لا يزال يقص. بيانونه به يې کول.

فقال ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ. ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته يوه ورځ فرمايي.

انشر سلعتك على من يريدها. وايي هلکه دا سامان دي هغه چا باندې خرڅ کړه چې څوک يې اراده لري او يا دا بازار دي وايي هغه ځای کې ګرم کړه چې څوک يې اراده لري مونږ ته د بازار ګرمي مه کوه او مونږ ته دا بيانونه مه کوه.

دارنګې تفسير القرطبي جلد ۲ صفحه ۶۲: دغه آيت باندې: ﴿مَا نَنسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا أَوْ مِثْلِهَا﴾ دې ځای باندې همغه روايت د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ را اخلي خو دې کې دا الفاظ زيات دي.

فاخرج من مسجدنا ولا تذكر فيه. دلته تذكير مه کوه.

دارنګې احیاء العلوم الدین جلد ۴ صفحه ۳۵ دې کې شیطان چې انسان ته دننه کیږي څومره لارې دي هغه لارې بنایي .
نو یوه لاره وایي داده چې عامې د علم خبرې شروع کړي عامې چې کله د علم خبرې شروع کړي نو شیطان دلته ننوځي دې وایي :

انما حق العوام . د عوامو حق دادی .

ان یؤمنوا . ایمان دې راوړي .

ویسلموا . اسلام دې راوړي .

ویشتغلوا بعبادتهم . په خپل عبادت او عمل دې مصروف شي .

ومعایشهم . او په دنیاوي روزګار کې .

ویترکوا العلم . پریږدې دې علم .

للعلماء . علم دي علماء ته پریږدي .

فالعامي لو یزني ویسرق . امي سړي که زنا کوي که غلا کوي .

کان خیرا له من ان یتکلم في العلم . دا غوره دي دده لپاره له دې نه چې په علم کې خبرې کوي .

فانه من تکلم في الله . چې علم کلام او ایمانیات دي .

وفي دینه من غیر اتقان العلم . بغیر د مضبوط علم نه .

وقع في الکفر . واقع به شي کفر کې .

من حیث لا یدري . ورته پته نه وي .

مثال یې داسې دي .

کمن یرکب لجة البحر . ودانګي چپې د بحر ته او دې نه پیژني .

السباحة . لامبو .

چا ورته ویلې دي وایي دې بحر کې ملغلرې دي او لامبو یې نه ده یاده چې غوپه یې

ووهله نو ملغلري څه چې سر خوري دغه شان تبليغ او د دين په اشاعت کې ملغلري ثوابونه دي خو د علم لامبوزن غواړي که د علم لامبوزن نه وي ورتوپ يې کړه کله په کې ايمان نه هم خلاص شي .

امام غزالي رَحِمَهُ اللَّهُ چې وايي عامي سړي چې زنا او غلا کوي هغه ورته ښه ده نه چې په دين کې خبرې وکړي د هغې وجه دا ښايي چې زناء کار زنا کوي او يا غل غلا کوي نو ګناه يې ګڼي بيا ترې توبه هم اوباسي دغه سړي چې امي دي او په علم کې خبرې کوي په ګناه کې اخته دي او دې ځان د جنت ټيکدار ګڼي توبه نه اوباسي له هغې نه .

هغه خو وايي زه ښه کار کې لګيا يم زه خو د جنت په لاره يمه دا نور خلک تباه دي دغه يې فرق دي ګڼې باقي دا علم کې خبرې دده به هغه شان قطعي حرامي نه وي دا به درجه د کراهيت کې وي هغه يقيني حرام دي نو بيا يې ولي هغه ته خير ويلې نو دغه فرق ده چې هغه توبه اوباسي دې توبه نه اوباسي دې دي ګناه ته ګناه نه وايي .

دارنګې تفسير القرطبي جلد ۴ صفحه ۱۶۵ دې نه بعد اوس هغه عبارتونه شروع کيږي

چې دوي کوم استدلال کوي ددې آيت نه : ﴿وَلۡتَكُن مِّنكُمۡ أُمَّةٞ يَدۡعُونَ إِلَى ٱلۡخَيۡرِ﴾ .

يا : ﴿كُنتُمۡ خَيۡرَ أُمَّةٍ أُخۡرِجَتۡ لِلنَّاسِ﴾ .

قرآن عظيم الشان بعضې د بعضې تقيد کوي ترجمه يې کوي .

**كنتم خير امة** خو عام دي دغه خطاب بيرته تخصيص يې شوې دي په بل آيت باندې چې **ولتكن منكم** شي دې بعضې ستاسې راجح تفسير په **منكم** دا دی چې **من** للتبين نه دي بلکې دا **من** د تبعيض لپاره دي شي دې بعضې ستاسو نه او مراد له هغه بعضو نه علماء دي دې د پاره تاسو تائيداتو ته ګوري چې **ولتكن منكم** کې علماء اخلي عوام نه اخلي نو تفسيرِ قرطبي جلد ۴ صفحه ۱۶۵ :

**قد مضى القول في الامر بالمعروف والنهي عن المنكر في هذه السورة في قوله منكم : ومن**

**في قوله منكم للتبعيض** . داد تبعيض لپاره دي معنى دا :

**ان الامرين** . امرين چې دي :

**يجب ان يكونوا علماء**. واجبه داده چې دا به علماء وي.

**وليس كل الناس علماء**. هر سړي خو عالم نه دي نو څنګه مامور شول په دې باندې نو

دا **من** تبعيضي شو.

**وقيل**. چا ويلي.

**لبيان الجنس، والمعني لتكونوا كلكم كذلك**. معنى دا شوه چې ټول به دا كار كوي.

**قلت**. زه وايم.

**القول الاول اصح فانه يدل على ان الامر بالمعروف والنهي عن المنكر فرض على الكفاية.**

دارنګې تفسير السعدي جلد ۱ صفحه ۱۴۲ : ولتكن منكم كې هغه وايي :

**ويدخل في ذلك العلماء المعلمون للدين والوعاظ الذين يدعون اهل الاديادن الى الدخول في دين الاسلام ويدعون المنحرفين الى الاستقامة والمجاهدون في سبيل الله.**

او داخل دي په دې كې مجاهدين في سبيل الله ولې وايي مجاهدين في سبيل الله په لاس باندې لګيا دي خلكو ته امرِ بالمعروف كوي او نهي عن المنكر كوي.

او علماء يې په ژبه باندې كوي.

**وكل هذه الامور من فروض الكفايات كما تدل عليه الآية الكريمة في قوله : ولتكن منكم امة الخ اى لتكن منكم جماعة يحصل المقصود بهم في هذه الاشياء المذكورة ومن المعلوم المتقرر ان الامر بالشيء امر به وبما لا يتم الا به فكل ما تتوقف هذه الاشياء عليه فهو مأمور به كالاستعداد للجهاد بأنواع العدد التي يحصل بها نكاية الأعداد وتعلم العلم الذي يحصل به الدعوة الى الخير وسائلها ومقاصدها وبناء المدارس للارشاد والعلم.**

ارشاد علم باطن شو علم علم ظاهر شو وايي دا هم په كې داخل شول وايي دې كې چې څوک كوشش كوي دا هم حقيقت كې دعوت الى الخير دي تبليغي جماعت بناء د مدرسې بناء د خانقاه دا كله داخل ګڼي په ولتكن منكم كې.

نو دا مې دې د پاره راواخيسته چې بناء د مدرسې د جهاد تربيتي تعليمي مراكزاو دغه شان دربارونه خانقاګانې د ارشاد دا ټولې داخل دي ولتكن منكم په دعوت الى الخير کې .

زاد المسير في علم التفسير جلد ۱ صفحه ۳۹۱ : قوله تعالى كنتم خير امة اخرجت للناس تأمرون بالمعروف وتنهون عن المنكر ، ددې معنى كوي :

قال ويجوز ان يكون امر منهم فرقة . يو ډلې ته امر شوې وي ولې :

لان الدعاة ينبغي ان يكونوا علماء . چې دا به علماء وي .

بما يدعون اليه وليس الخلق كلهم علماء والعلم ينوب بعض الناس فيه عن بعض كالجهاد.

فتح القدير للشوكاني جلد ۲ صفحه ۸ :

ولتكن منكم ومن في قوله منكم للتبعيض وقيل لبيان الجنس ورجح الأول بان الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر من فروض الكفايات يختص بأهل العلم الذين يعرفون كون ما يأمرون به معروفاً وينهون عنه منكراً قال القرطبي : الأول أصح فانه يدل على ان الامر بالمعروف والنهي عن المنكر فرض على الكفاية .

تفسير الكشاف مع الحواشي جلد ۱ صفحه ۳۹۶ :

مِنْ للتبعيض لان الامر بالمعروف والنهي عن المنكر من فروض الكفايات ولانه لا يصلح له إلّا من علم المعروف والمنكر .

وروسته وايي :

فان الجاهل ربما نهى عن معروف وامر بمنكر .

روح المعاني جلد ۲ صفحه ۲۳۸ :

ومنشأ الخلاف في ذلك أن العلماء اتفقوا على أن الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر من فروض الكفايات ولم يخالف في ذلك الا النزر منهم شيخ ابو جعفر من الامامية .

د شيعه ګانو اماميه فرقې نه شيخ ابو جعفر ددې قائل دي چې تبليغ فرض عين دي فرض كفائي نه دي خو جمهور ددې نه دي قائل .

قالوا انها من فروض الاعيان . دا قول يې شيعه ګانو ته منسوب کړو .
دارنګې تفسير السراج المنير جلد ۱ صفحه ۱۹۳ :

فمن للتبعيض لأن الأمر بالمعروف والنهي عن المنكر من فروض الكفايات ولانه لا يصلح له الا من علم المعروف والمنكر .

دارنګې تفسير الوسيط للقرآن الكريم جلد ۲ صفحه ۲۰۳ :

ولذا قال صاحب الكشاف مرجحا ان مِنْ للتبعيض قوله ولتكن منكم امة مِنْ للتبعيض لان الامر بالمعروف والنهي عن المنكر من فروض الكفايات لانه لا يصلح له الا من علم المعروف والمنكر .

دا ددوي د هغه استدلال جواب نه وشول چې دوي دا کله پيش کوي د امر بالمعروف او نهي عن المنكر آيتونه نو هغلته د منکم د تبعيض سره هغلته تکليف د علماء دي دعوامو نه دي او هر څوک په دې سره مراد نه دي دا د امي د تبليغ مسئله وه او ډيره زياته افواه ما پسې شروع ده چې دې د تبليغ مخالف دي زه ددغه خاص مشن چې ټول عوام راغونډ دي ددغې مخالف يمه د تبليغ منكر نه يمه او نه يې مخالف يمه خپله هم الحمد لله تبليغ کومه اعلى درجه د تبليغ څه شي دي چې سړي د يهوديانو عيسويان باليد مقابله او دغه شان باللسان مقابله وشي دا اعلى درجه د تبليغ دي .

دويمه درجه کې بيا هغه دې امت کې دوه اويا (۷۲) ډلې دي د هغې مقابله بيا سړي لساني وکړي څوک به يې وکړي په پاکستان کې د شيعه ګانو مقابله به سپاه صحابه وکړي خو د خوارجو نه کوي که د خوارجو څوک وکړي بيا د شيعه ګانو نه کوي چې ددې ټولو مقابلې لپاره لګيا وي دغه شان عمل په کار دي نو دويمه درجه امر بالمعروف په معروفې عقيدوي باندې دي او نهي د منكر چې منكرِ عقيدي .

بيا دريمه درجه کې امر په معروف په مفروضاتو دي او نهي د منكر د محرماتو نه دي څلورمه درجه امر په معروف دي په مندوباتو باندې نهي د منكر دي له مکروهاتو نه تبليغي حضرات امرِ بالمعروف دا څلورمه درجه نهي د منكر خو بيخي په کې نشته دوي چيرته د منكر نه منع کړې دي امرِ بالمعروف د يهودو خلاف دا نشته په کې امرِ بالمعروف د اهل زيغ

په خلاف نشته په کې امرِ بالمعروف په مفروضاتو باندې هغه هم په کې نشته سوی د فرض نه باقي نورو باندې ترغیبات نه ورکوي .

دوي باندې امر بالمعروف د مندوباتو دي مسجد ته ننوځي کور ته ځي څه دعاء به کوي وغیره دا مندوبات دي دا امر د معروف د مندوباتو خلکو ته ذهن کې دا اچول چې همدغه امرِ بالمعروف دي او بل نه شته دا خلکو چې مقابلې د یهودانو کړې د عیسویانو هندوانو یې کړي دا چا چې ددې دوه اویا (۷۲) ډلو مقابلې کړې دا ټول امرِ بالمعروف نه شو او یو څو مستحباتو دعواتو باندې امر دا امر بالمعروف شو .

نو تاسو هم په دې ذهن خلاص کړې هغه اعلی درجې د امرِ بالمعروف راټینګې کړي او د نهي د منکر په دې اسلامي ملکونو کې مقابله د اهل زیغو وکړي دا نهي د منکر ده او د عقیدې د اهل سنت ترویج وکړي دا امر په معروف باندې دي له دې نه وروسته بیا عمل ته راکوز شي .

## حکایت :

زه دې هزار خوانې کې یو ځل چا دعوت ته بوتلمه یو شیخ معروف یې هم را غوښتې وه نوم اخیستل یې مناسب نه ګڼمه نو هغه څو ځایه ما سره بیان کې مخامخ شي خو دا تعصب هم بد شي دي مونږ یې نه کوو دوي یې کوي راسره یو ځل یو ځای په کچه ګړهي کې یو پروګرام کې ورسره یو ځای شومه اول ځل زما او دده لیدل وه دا سړي بیان ته پاڅیده او بیان دده دا وه چې تاسو جاهل قوم یې پیرانو ته په څلورې روان یې لاسونه یې مچ کوي په شاه شاه ترې روان یې او چې علماء شي طالبان شي بیا پرې سلام هم نه اچوي ټول بیان یې په دې وه دا عوام یې ښه سپک کړه خو مقصد یې رد په ما باندې وه کنه دا اشارې ټولې ما ته وي طالبان هم ناست وه هغوي هم مسکي مسکي کیدل چې مولوي صاحب نه خو یې ښکي ویستې او ما دا دعاء کوله چې یا الله اوس خیر کړي هسې نه چې تقریر نه وروسته ونه تښتي چې کیني .

چې تقریر څنګه خلاص شو کیناسته دعاء مې قبوله شوه زما نمبر راغې بیان ته پاڅیدم په ډیر ادبي لهجه کې ما وویل چې جناب شیخ صاحب محترم څه وویل خپل زړه یې سپک کړو د زړه بړاس یې ویسته یقیناً دا ستاسو کمزوري ده چې طالبانو علماو ته ولې سپک ګوري ټول بیان یې په دې کړې وه .

خو ما وویل زه صرف دغه وایمه چې جناب شیخ صاحب ټوله ګناه په تاسو واچوله چې دا ټوله غلطي هم ستاسو ده نه زما د طالب غلطي ده نه زما د ملا خو که زه سوچ وکړم دا ستاسو غلطي نه ده ځکه تاسو همغه خلک یې چې یو متدین ولې ښه سرې وګورې په څلورې ورته راځې لاسونه او خپې یې هم ښکلوې لاس کې پیسې هم ورته ږدې ځان هم پرې دموې بیا چې بالمقابل ما ملا ته وګورې سلام هم رابانده نه اچوي نو دې نه پته لګي چې دا نقصان تاسو کې نه دې دا ما ملا کیدې زه ملا د هغه پیر غوندې پوره شریعت باندې برابر نه یمه.

که زه هغسې برابر شوم نو تاسو امیان بیا ما ته هم په څلورې راځې زما لاس به هم ښکلوې زما قدر او عزت به هم کوې په دا بل طرف پرې راتاو شوم خو ښه مې برابر کړو.

بیا چې را کوز شومه ما ورته وویل شیخ صاحب خفه شوې خو به نه یې نه نه وایې دا خو ډیرې ښې خبرې وشوې خو دا خبره یې راته زړه کې واچوله ده هم ویلې چې بیا به چیرته سره مخامخ شو اتفاقاً څلور یا پنځه کاله بعد بیا په هزارخوانې کې سره یو ځای شو هغه د چا چې پروګرام وه دده هم شاګرد وه او زما هم شاګرد وه ده ته یې بیان مخکې ورکړو دې اوس هغه مخکنې غصه په ما سړه وې پاځیده وایې دا دور د جهاد دې او ټول خلک جهاد ته ملا وتړې دا ددې دور نه دې چې دا کافر دې دا بدعتي دې او دا اهل زیغ دې وغیره.

په دې بل طرف په ما راتاو شو ښه یې ځان ستړې کړو بیا د هغې نه بعد یې عوامو ته وویل دا شکلونو ته مو ګوره مردار شکلونه ګیرې هم خریلې دې ستاسو او د کافر پته نه لګیږې په کورونو کې مو ټي وي یان لګولې دې د کافرانو رواجونه هم شروع کړې دې په دې طرف یې عوام ښه سپک کړل عوام خو ډیر تنګ شول څه لاړ ترې نه.

تقریر نه چې کیناسته نو زما نمبر راغې ما بیان شروع کړو نو ما وویل چې جناب شیخ صاحب ښه خبره وکړه چې دا دور د جهاد دې د جهاد په دور کې سړې باید متفق شي د لوي کافر به مقابله کوي او یقیناً امارت اسلامي په دغه وجه باندې اهل حدیث دې که شیعه ګان د افغانستان دې که هر څوک دې ټولو ته لمن خلاصه کړې ده چې راشي مونږ سره صف کې او دریږې د کافر مقابله وکړې داد ضرورت پر بناء.

کتبو د متکلمینو لیکلي دي چې کله د کافر مقابله وي خوارج معتزله دا څو مره ډلې چې دې نو دا به ځان سره صف کې پریږدې د هغوي د مقابلې لپاره نو ما وویل امارت او

احنافو دې ته پوره ځای ورکړې دي پاتې شو دا خبره چې اوس به مونږ په دغه جماعاتو رد کوو که نه به یې کوو دا جرم دي که جرم نه دي نو ما وویل ددې لپاره که دا رد مونږ وکړو بیا وهابیان مونږ نه خفه کیږي او زمونږ صف کمزورې کیږي لهذا مونږ به وهابي پسې څه نه وایو.

نو بیا جناب شیخ صاحب محترم ته مونږ دا عرض کوو چې بیا دې ګیر خریلو پسې هم څه مه وایه ځکه بیا دا ګیر خریلي بیا مونږ نه خفه کیږي د جهاد صف بیا کمزورې کیږي او چې کله څوک تهي ویان او ډیشونه څوک لګوي دوي پسې هم څه مه وایه ځکه بیا صف خرابیږي کنه او چې څوک قتل کوي هغه پسې هم څه مه وایه ځکه صف خرابیږي.

دا ګناهونه مې را قطار کړل ما وویل چې دا هره ګناه څوک کوي څه ورته مه وایه ځکه صف د مجاهدینو خرابیږي او که نه دا عملي قبحه په چاکې وي دا نهي عن المنکر به نه پریږدي ولو که صف د مجاهدینو کمزورې شي خو ته به نهي عن المنکر کوي.

نو مونږ دا وایو چې جناب شیخ صاحب تا ته دا عقیدوي منکر منکر نه ښکاري که څنګه دده په نزد دا تهي وي او دا ګیره خریل د وهابیت او رافضیت نه غټه ګناه ده چې په دې یې خپله هم رد ونه وکړل دلته دا سوچ نه کوي چې صف د مجاهدینو کمزورې کیږي په تهي ویانو والا رد مه کوه او چې کله اهل زیغ باندې ردود شروع شي بیا ورته دا خبره مخې ته راشي.

ما وویل چې دې نه پته لګي چې یا خو ددوي په نزد باندې دغه اهل زیغ دا منکر نه دي او تهي وي والا او ګیر خرلي منکر دي او که نه هغوي ته منکر وایي نو چې په دوي رد کیږي نو په هغوي به اول کې رد کیږي انصاف دادی او که خامخا وایي چې صف کمزورې کیږي بیا به په یو هم رد نه کیږي نه به په عقیدوي منکر رد کوي نه به یې په عملي منکر رد کوي.

دا په امارت اسلامي کې هم چې بعضې خواص نه دي عوام نوي چې ورسره ملګرې شوې دي نو هغوي دا خبرې کوي ځای په ځای باندې دې ته ضرورت نشته او هغوي په خپله بیا داسې سخت شرائط د افغانستان په هغه علاقو چې نفاذ د امارت نه وي راغلې هلته نافذه وي ځای په ځای خطونه خوروي بعضې کارونه کوي داشې بند کړي کنه داسې کار به درسره وکړو اخطارونه ورکوي خلکو ته هم دا مجاهدین بیا دا خوروي.

نو دا عملي منكر ولې منع كوي ولې دا عوام ځان نه متنفره كوي په دې څيزونو باندې هلته هم دا سوچ وكړه كنه چې زما صف كمزورې كيږي خير دي د عملي منكر د نهي نه به ور تير شمه خو نه ستا ذهن كې هغه منكر ښكاري او دا منكر نه ښكاري كه دا در ته منكر ښكاره شو نو اول قدم كې په دوي رد په كار دي نو معززو منكرات اول عقيدوي رد كړې دا فساد رد كړې او امر په معروفې عقيدوي وكړي چې اهل سنت دي او د هغې نه بعد عمل ته راكوز شي چې علم مو وكړو كوي يې او زمونږ ستاسې دغه وظيفه ده ادا كوو به يې .

دې سره مسئله د تبليغ النساء هم وه خو په دې مستقل رسائل ليكل شوې دي مفتي سيف الله صاحب د اكوړي نه كشف الغطاء عن تبليغ النساء دا پيدا كيږي واي خلي هغه خه عبارت د فقهاو او نصوصو چې زه پيش كومه هغه ټول يې ذكر كړي دي .

او عبد الله ذاكري صاحب د افغانستان د علماو نه ده يو كتاب ليكلي دي په مشكله به پيدا شي اقوال المفسرين والمحدثين وفقهاء الامة في منع خروج النساء الى مجلس الوعظ داد هغه د كتاب نوم دي وعظ او تبليغ ته د ښځو وتل ممنوع دي په دې باندې بيا چې هغه څومره خواري كړې هغومره مفتي سيف الله صاحب نه ده كړې د مفتي سيف الله صاحب كتاب ما كتلي حوالې يې كمې دي خو دده كتاب ډير جامع دي نو چې هريو پيدا كولې شي پيدا يې كړي او اكتفاء پرې وكړي خو دې زمانه كې د سدِ باب فساد لپاره فقهاو فيصله كړې ده چې خروج ددوي مجالسو د وعظ ته او زنانه مدرسې ته ليږل او د تبليغ په خاص شكل سره ليږل دا ممنوع دي او كه دوي له دې نه جواب كوي .

لكه ما ته يو تبليغي وويل چې دا خو مونږ دورځې نه ليږو مونږ د شپې ليږو د ماسخوتن نه بعد د ورځې يې نه ليږو نو ما ورته وويل چې وه لالا زه دې اوس څنګه پوه كړمه چې ته نه پوهيږي نو دا لانجه د شپې جوړيږي كه د ورځې جوړيږي دا خو ته زما دليل وايې خپل خو نه وايي كنه .

نو شپې خو لا فساد دي كنه نو داد هغه فساد له وجې نه داسې نه چې د ښځې لپاره دين زده كول يا د ښځې بل چا ته دين ښودل دا به ګنې جزم وي نه ددغه فساد له وجې نه نو چې هر كله د ښځو تبليغ ممنوع دي فقهاو ناروا ګڼلې ، عمدة القاري ورته مكروه تحريمي ويلې نو دا حرام دي دې زمانه كې او دا زيارتونو ته چې كمې ښځې ځي دا خو په طريق اولى ممنوع

دي ځکه چې علم فرض دي جمع سنت مؤکد ده اعتکاف سنت مؤکد دي دې ته راتلل او عيدينو ته تلل دا ممنوع شول مدرسې ته تلل علم فرض دي ممنوع شول نو زيارت ته تلل خو درجه استحبابي د ښځو په حق کې اختلافي د اول نه اختلاف دي چې جائز دي که ناجائز .

ځه که جائز هم شي چې هر کله د فساد له وجې نه دغه فروض پاتې شول دوي نه چې دا به علم ته نه ځي تبليغ ته به نه ځي او مسجد ته به نه ځي نو بيا به زيارت ته تلل په کوم دليل روا شي هغه په طريقِ اولی ممنوع دي سره له دې نه چې فساد مدرسه او تبليغ کې به هم وي خو په زيارتونو کې چې نن صبا څومره فساد خور دي او خوريږي نو دومره په دا نورو کې نه خوريږي او زيارتونه د اولياء بې آدبي پرې مه کوي .

خو د هغې نه سوا د دې ښځو د لاسه د زناګانو اډې جوړې شوې دي او څومره لوچه ګان چې ځي هغه دې زيارتونو ته ځي او د هغې ځای نه جينکي اوچتوي او بيا نورو کارونو پسې ځي او دا بد کاره ښځي هم چې کوم دي چې په لاره اوروډونو باندې زانيان ورته پيدا نه شي نو د يو زيارت طرف ته لاړ شي هغلته ځان ته زنا کار ګوري نو دا زيارتونو ته د ښځو تلل په دغه شکل باندې هغلته بيا ميلي کول او نور غير شرعي کارونه کول حرام دي .

داد يهوديانو عيسويانو د هندوانو او د بت پرستو رواجونه دي چې زمونږ خلکو کې راخواره شوې دي د هغې په کلکه باندې ممانعت کوي باقي مريد کول د ښځو زه د هغې هم موافق نه يمه .

هر کله چې علم ظاهر مدرسې ته تلل يې ممنوع دي نو په علم باطن کې هم دغه مسئله ده او که څوک وايي چې د هغې بله لاره نشته ولې نشته بس يوه شيخ الطريقه زنانه دې شي خاوند دې خپلې بي بي خپلې خور ته طريقت ورکړي اسباق دې ورکړي په دې کې دې ارشاد ورته وکړي هغې نه بعد دي بيا هغه زنانه شروع شي هغه دي د دې ارشاد وکړي نور لاړې شته کنه خو راتلل د هغې خواص به مستثنی کړمه خو دا عام خلک اکثر د دې نه فساد جوړيږي که د شيخ الطريقة کور ته ورځي هغه باندې به ستا ښه ګمان وي د هغه ځامن بچي د هغه لمسيان هغوي باندې څه اعتماد دي د دغه کورونو زنانه چې پيرانو ته هم ځي دا هم ممنوع دي او دغه شان علم ته تبليغ ته او مزاراتو ته دغه کتابونه پيدا کړي په هغې کې حوالې د فقهاو مذکورې دي .

